# په اسلام کې د اختلاط حکم
# د بیګانه نارینه او ښځو تر منځ کېدون
# شرعي حرمت او په ضررونو يې د غربيانو اعتراف



تألیف: حمدالله «شاکري»

# په اسلام کې د اختلاط حکم

## د بیګانه نارینه او ښځو تر منځ کېدون

## شرعي حرمت او په ضررونو یې د

## غربیانو اعتراف

لیکوال : حمدالله "شاکري"

## سریزه

الحَمْدُ لله رَبِّ العَالَمِينَ وَالصَّلاَةُ وَالسَّلاَمُ عَلَى سيَّد الأَنْبِياءِ وَالمُرْسَلِينَ،سَيِّدِنا مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِهِ وَأَصْحَابِهِ وَالتّابِعِينَ وَمَنْ تَبِعَهُمْ بِإِحْسَانٍ إِلَى يَوْمِ الدِّينِ، أما بعد:

په دغه کتاب کې د بیګانه (نامحرمو) نارینه او ښځینه تر منځ د پردې پرته په یو ځای کې اختلاط یا کېدون هغه که ټولګی وي، دفتر وي، کوم بل کار ځای او یا مناسبت او محفل وي د شرعي دلائلو په رڼا کې بیان شوی دی.

د اختلاط حکم، د اختلاط د حرمت په اړه د علماوو اجماع، د اختلاط ضررونه او همدارنګه د اختلاط هغه ضررونه کوم چې د غرب علماء هم ورباندې اقرار کوي تفصیلي بیان شوي دي.

له یو اړخ څخه اختلاط د طاغوتي غربي دیموکراسۍ شعار دی کوم چې اوس مهال یې په ډیرو اسلامي هیوادونو باندې خپل ناولي وزرونه غړولي دي له بل اړخ څخه ځنې دجالي کړی کوښښ کوي څو هغه ته د حلال جامه ور واغوندي .

نو ما د حق د بیان لپاره اراده وکړه څو په روانه ملي ژبه باندې یو کتاب چې د قرآن او سنتو د دلائلو په رڼا کې ترتیب شوی وي ولیکم څو مسلمانانو ته دغه مسئله پوره څرګنده او د دجالانو له فتنې څخه په امن شي . و بالله توفیق

# لومړی فصل

# د اختلاط پېژندل او ډولونه

## د اختلاط تعريف :

اختلاط په لغت کې د يوې شي کېدول له بل شي سره، يا د يوه شي يو ځای کول له بل شي سره او يا د يو شي نږدې کول له بل شي سره او يا د يو شي شريکول له بل شي سره او يا هم ټوليدل او غونډيدلو ته وايي .

په اصطلاح کې: د بيګانه نارينه او ښځو تر منځ په يو ځای کې کېدون او ټوليدل داسې چې تر منځ يې د ليدلو، اشارې کولو، خبرې کولو اړيکه وي پرته له کوم مانع او پردې څخه کوم چې د شک او فساد سبب ګرځي لکه: په علمي مرکزونو، دفترونو، تجارتي ځايونو، شرکتونو او نورو ځايونو کې د محارمو پرته د بيګانه نارينه او ښځو تر منځ کېدون کولو ته وايي [1] .

[1] - الاختلاط بين الرجال و النسآء ص ٥/ دوکتور سعيد بن علي بن وهب القحطاني .

## د اختلاط ډولونه:

د اختلاط هغه ډولونه کوم چې اوس مهال په اسلامي هيوادونو کې خپاره شوې دي:

١ -د لس کلنۍ څخه د لوړ سن اولادونو (ورونو او خويندو) تر منځ اختلاط، حال دا چې اسلامي شريعت حکم کړی دی چې د لس کلنۍ وروسته به د هغوی بسترې جلا کيږي، يعنې کله چې اولادونه لس کلنۍ ته ورسيږي د والدينو څخه به يې بستره جلا کيږي او همدارنګه ورور به د ورور سره يا خور د ورور او يا خور د خور سره په يوه بستره کې نه څملوي بلکې د هغوی بسترې به ورجلا کوي.

جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي : «مُرُوا أَوْلاَدَكُم بالصَّلاَةِ وَهُمْ أَبْنَاءُ سَبْع سِنِينَ وَاضْرِبُوهُمْ عَلَيْهَا وَهُمْ أَبْنَاءُ عَشْرٍ، وَفَرِّقُوا بَيْنَهُمْ فِي الْمَضَاجِعِ»[٢] .

[٢]- رواه البخاري :

ژباړه: کله مو چې اولادونه اوه کلنۍ ته ورسیدل هغوی ته په لمانځه کولو امر وکړئ او کله چې لس کلنۍ ته ورسیږي که لمونځ ونه کړي هغوی ووهي او په همدې سن کې د دوی بسترې ور جلا کړئ.

۲ -په یوازېوالی کې چې محارم یا نورې ښځې نه وي د خپلو نا محرمو خپلوانو سره کیناستل او اختلاط او یا له هغې سره سفر کول لکه : د میرمنې خور خینه او یا د خینې لور ،د ماما لور ،د عمه لور ،د کاکا لور ،همداسې د ښځې اختلاط د محارمو پرته د خاوند د ورور یا لِور سره او د خاوند د نورو خپلوانو سره لکه : د خاوند د کاکا زامنو سره، د خاوند د ماما یا د ماما د زامنو سره او نورو نا محرمو خپلوانو سره.

عقبه بن عامر رضی الله وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:«إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ». فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الأَنْصَارِ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَفَرَأَيْتَ الْحَمْوَ؟ قَالَ: «الْحَمْوُ الْمَوْتُ»[۳]

[۳]- رواه البخاري :۵۲۳۲.

ژباړه: د بيګانو ښځو د خلوت څخه ځان وساتئ، د انصارو څخه يوه کس پوښتنه وکړه: يا رسول الله صلی الله عليه وسلم د خاوند د خپلوانو (د خاوند ورور لېور، د کاکا زوی، د عمه زوی) په اړه ستاسې نظر څه دی؟ ويې فرمايل «هلاکت په همدې کې دی».

حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کې وايي: په اتفاق د اهل لغت «احماء» د خاوند خپلوانو لکه د خاوند ورور، د خاوند د کاکازوی، د خاوند د عمه زوی او نورو ته وايي.

ښځې ته د خاوند د خپلوانو څخه پرده کول فرض دي او همدارنګه د هغه سره يوازې کښناستل، سفر کول حرام دي مګر د ضرورت په وخت کې خبرې کول او د هغې د خاوند يا نورو خپلوانو په حضور کې د حجاب په صورت کې د هغې سره کښناستل باک نه لري[٤].

شوکاني رحمه الله وايي: دغه فرموده د پيغمبر صلی الله عليه وسلم «الحمو: الموت» په دې معنی ده چې ويره له هغه څخه داسې ده لکه

[٤]- فتح الباري شرح صحيح البخاري : ٣٣١/٩ .

له مرګ څخه ویره کول ځکه له ټولو څیزونو څخه خلک ډیر زیات له مرګ څخه ویریږي[٥].

په ټولنه کې چې هر وخت د بې شرمۍ واقعه مینځته راځي هغه د همدې ډول خپلوانو، کلیوالو تر مینځه د بې حجابۍ او بې بندبارۍ او اختلاط نتیجه وي.

ډیر کم او حتی بالکل نه لیدل کیږي چې داسې واقعې دې د بیګانه خلکو له لاسه وي.

نو ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم د خاوند د خپلوانو په باره کې بې حجابي او خلوت کول له مرګ سره تشبه کړي دي.

٣ -په کورونو کې د خادمانو او مزدورانو استخدام او د هغوی سره د ښځو اختلاط.

٤ -په مکاتبو، پوهنتونونو، دفترونو، روغتونونو، شرکتونو او نورو ځایونو کې د نارینه او ښځو تر منځ اختلاط او کډون.

[٥]- نيل الأوطار:١٢٢/٦.

## په اسلامي هیوادونو کې اختلاط کله پیل شو؟

د اسلامي امت په هیڅ هیواد کې او سیمه کې د نارینه او ښځو تر منځ په تعلیم، کار ځای او نورو کې اختلاط (کډون) نه وو.

کله چې صلیبي جګړې له سختې ماتې سره مخ شوې نو د اسلام دوښمنانو وغوښتل تر څو عثماني خلافت نسکور کړي مګر دوی مخامخ ددې خلافت د مقابلې توان نلرلو نو لومړی یې د اسلامي خلافت څخه ځنې اسلامي هیوادونه بیل کړل او د دغه کار لپاره انګلیس او فرانسې پخپل منځ کې تړون وکړ، انګلیس په هند یرغل وکړ او په هند کې یې د بابریانو اسلامي دولت ونړولو وروسته یې په مصر او فلسطین یرغل وکړ او فرانسې په الجزایر، مراکش، سوریه او لبنان باندې یرغل وکړ او دغه هیوادونه یې د عثماني خلافت له قلمرو څخه جلا کړل او بیا یې د خلافت په داخل کې ځنې مزدوران وروزل لکه د ترکیه د اتحاد او ترکي ګوند چې مشري یې د اتارک پر غاړه وه او ددغه مزدورانو په وسیله یې د یوې فوځې کوتاه په وسیله عثماني خلافت ونړولو (انا لله و انا الیه راجعون).

دا چې اسلامي امت همداسې ضعيف او د ربښتني اسلامي فکر څخه لرې او د شرعي نظام څخه بې برخه وي او د خپلو استعماري اهدافو د تر لاسه کولو لپاره يې په اسلامي هيوادونو کې ځنې بدلونونه رامنځته کړل لکه : د قانون سکولر کول، د تعليم سکولر کول او د رسنيو سکولر او بې دينه کول او همدارنګه د ښځې د ازادۍ په نوم ښځه د خپل کور، خپلې جامې او حجاب، عفت او حيا څخه آزادول او د نارينه سره د هغوی کډول[6] .

انګليس د اسلامي هيوادونو د اشغال پر مهال د تعليم په منهج کې لاندې بدلونونه راوستل :

- ✓ په مالي او معنوي توګه د شرعي تعليم محدودول .
- ✓ په اسلامي هيوادونو کې د غربي مکتبونو او پوهنتونونو جوړول .
- ✓ غرب ته د زده کړې لپاره د ځنو ځوانانو ليږل په داسې توګه چې کاملاً به د دوی تر نظارت لاندې وو تر څو غربي فکر واخلي .

- أساليب الغروه الفكري للعالم الاسلامي / دوكتور على جريشه .[6]

✓ په تعليم کې د نارينه او ښځينه زده کوونکو تر منځ اختلاط را منځته کول .

د نارينه او ښځو اختلاط لومړی په کال د (۱۳۹۳ ه.ق) د غربيان په لمسون د مصري وزير «احمد لطيفي» لخوا د مصر په پوهنتونو کې د هلکانو او مخ لوڅو نجونو تر منځ رامنځته شو او د دغه کار سره طه حسين مرسته وکړه[۷] .

او وروسته په ډېرو اسلامي هيوادونو کې رواج او د دغه ناوړه کار د رواجولو لپاره غربيانو او د هغوی مزدورانو تبليغاتي هڅې وکړې .

امريکايي مؤسسې (فرانکلين) يو کتاب په يو اسلامي هيواد کې خپور کړی وو او په هغه کې يې داسې ويلي : ددې پر ځای چې نجونې او هلکان سره بيل کړو بايد هغوی ضرور په لوبو او کارونو کې سره کډ او شريک کړو، کچېرې د هغوی تر منځ څه پاروونکی حرکت منځ ته راشي بايد هغه ته د يو ډول دوستۍ په سترګه وګورو نه د جرم او عشق، دلته امريکايي مؤسسې کوښښ کړی تر څو د

[7] - حراسة الفضيلة، للعلامة بكر أبو زيد، ص 139.، احتلاط بين رجال و النساء / دوكتور قحطاني ص ١١ .

حرامو څخه د حرام نوم لرې کړي او هغه ته د پاکۍ درواجنه جامه ور واغوندي[٨] .

لنډه دا چې په اسلامي هیوادونو کې د نارینه او ښځو تر منځ اختلاط د کفري یرغل پر مهال د اسلام دوښمنو لخوا رواج شوی دی .

## د اختلاط حرمت

د نارینه او ښځو تر منځ اختلاط هغه که په تعلیم کې وي ،دفتر او کار ځای او نور کې وي شرعاً حرام دی.

په اوس عصر کې یو عظیم فساد د نارینه او ښځو په علمي مرکزونو،دفترونو کې اختلاط او کېدون دی چې دا عظیم فساد د جاهلیت د ناوړو عاداتو او د لنډغرې ډیموکراسۍ له سترو اهدافو څخه دی او دا د الله تعالی د سرسختو دوښمنانو یهودو،نصاراؤ او نورو کفارو په لاره تګ دی او د هغوی سره مشابهت دی ځکه چې د نارینه او ښځو خلوت د کفارو له لویو صفاتو څخه یو صفت بې حیایي د نر او ښځو تر منځ کېدون او اختلاط دی.

---

[٨]- أساليب الغزوه الفكري لعالم الاسلامي / دوكتور علي جريشه .

# د اختلاط د حرمت شرعي دلائل

## اول – د قرآنكريم دلائل :

### لومړي دليل:

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [وَإِذَا سَأَلْتُمُوهُنَّ مَتَاعًا فَاسْأَلُوهُنَّ مِن وَرَاء حِجَابٍ] [٩] .

ژباړه: او كله چې تاسو له دغو (پاكو ازواجو) نه څه سامان غواړئ، نو له دوی نه يې په داسې حال كې غواړئ، چې تاسو له پردې نه د باندې يئ.

الله تعالى مؤمنانو ته حكم كړی دی چې كله د حاجت په وخت كې د نبی صلى الله عليه وسلم له پاكو بيبيانو څخه څه غواړئ چې په دې حكم كې ټولې مؤمنې ښځې شامليږي نو له دوی نه يې په داسې حال كې غواړئ، چې تاسو له پردې نه د باندې يئ او د پردې څخه د باندې واضح دليل دی چې تر منځ مو بايد پرده، ديوال او بل څه وي او كډون او اختلاط نه وي. [١٠]

---

[٩]- سوره الاحزاب :٥٣ .

[١٠]- الجامع لأحكام القرآن، للقرطبي، ١٤/ ١٧٨.

تفسير ابن كثير وايي: په دغه آيت كريمه كې د بيګانه نارينه او ښځو له كېدون او اختلاط څخه منع شوې ده : « وكما نهيتكم عن الدخول عليهن ».

**دوهم دليل :**

د سپيڅلي اسلامي شريعت قاعده ده كله چې الله سبحانه وتعالى يو شى حرام كړي وي نو د هغه اسباب او د وصول لارې يې هم حرام كړې وي تر څو د هغه د وصول څخه منع شي او هغه ته نږدې نشي ، زنا ستره فحشاء ده او ډير بد او سخت خطر او ضرر لري نو د هغې څخه مخنيوى او وقايه د اسلامي شريعت ستر مقصد دى.

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [وَلاَ تَقْرَبُواْ الزِّنَى إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَسَاء سَبِيلاً][11] .

ژباړه: او تاسو زنا ته مه نژدې كيږئ، بېشكه دا له شروع نه غټه بې حيايي ده او بده لار ده.

[11]- سوره الاسراء :٣٢ .

نو ځکه د هغې د وصول ټول اسباب حرام دي لکه : بې حجابي، تبرج، اختلاط ،د کافرانو ښځو سره مشابهت او نور چې ټول د فتنې او فساد وسائل دي[12] .

وقال الشيخ محمد الأمين الشنقيطي ::«ولا يصح لعاقل أن يشك في أن اختلاط الجنسين في غاية الشباب ونضارته وحسنه أنه أكبر وسيلة وأنجح طريق إلى انتشار الفاحشة وفشو الرَّذيلة بين الجنسين»[(13)].

ژباړه: او شيخ محمد امين الشنقيطي رحمه الله وايي : د شک پرته هر عاقل په دې پوهيږي چې د نارينه او ښځو تر منځ اختلاط هغه هم د ځوانۍ پر مهال چې يو بل ته ګوري او يو د بل حسن او ښکلا ګوري د دواړو جنسونو تر منځ د فاحشې او رذالت خپرولو ستره وسيله او کامياب لاره ده .

**دريم دليل :**

الله سبحانه وتعالى فرمايي: [وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلاَ تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الأُولَى][14] .

ژباړه: او تاسو په خپلو کورونو کې قرار ونيسئ او تاسو د ړومبني جاهليت د زينت ښکاره کولو په شان زينت مه ښکاره کوئ.

---

[12]- ، أحكام اختلاط / شيخ طحتاوى ص ٢٢، حراسة الفضيلة، ٤٩.
١٣- حكم الإسلام في الاختلاط، جمعية الإصلاح، ص ٧٨.
[14]- سوره الاحزاب :٣٣ .

پورته آيت كريمه په دې باندې دلالت كوي چې ښځې د كورونو په انتظام باندې مأمورې شوې دي (ځكه چې دا كار د هغوى د فطري جوړښت سره مناسب دى) .

نو د هغې لپاره اصل دا دى چې په كور كې به پاتې كيږي او دا د هغې په حق كې شرعي عزيمت دى مګر د ضرورت پر مهال له كور څخه وتل يې په حق كې رخصت دى مګر دا وتل به د شرعي ضوابطو موافق وي[15] .

او ښځه د «التبرج» څخه منع شوې، اصل «التبرج» له «البروج» څخه دى چې لاندې معناوې لري:

- ✓ د ضرورت پرته ډير وتل .
- ✓ د فتنو او زينت د ځايونو ښكاره كول (بې حجابي) .
- ✓ او دا چې د نارينه سره اختلاط او كډون كوي .

**څلورم دليل :**

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ ...][16] (النور: ٣٠/٣١).

ژباړه: او مؤمنانو ښځو ته ووايه چې پټې دې كړي ستركې خپلې (له نا محرمو) او د خپلو شرم ځايونو ساتنه دې وكړي.

[15]- الاختلاط بين الجنسين في الميزان / دوكتور خالد بن عثمان السبت ص ١٩ .
[16]- سوره النور :٣١ .

الله سبحانه وتعالى خپل پيغمبر صلى الله عليه وسلم ته امر کړی دی چې ته د مؤمنانو ښځو ته ووايه چې خپل نظر له بيګانه څخه وساتي او خپلې شرمګاوې د زنا څخه وساتي .

ښکاره خبره ده چې د زنا د فحاشت څخه د ځان ساتل د هغه د وسائلو څخه د ځان ساتل دي او د فاحشې د خپريدو ستره وسيله په تعليم، دفتر،کار ځای او نورو کې د نارينه او ښځو تر منځ اختلاط او کېدون دی په نن عصر کې همدا اختلاط د فاحشې د خپريدو ستره وسيله ده[17] .

## د نبی صلى الله عليه وسلم د سنتو په رڼا کې :

### لومړی دليل :

عقبه بن عامر رضی الله عنه وايي چې رسول صلى الله عليه وسلم فرمايي:«إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ»[18] .

ژباړه: د بيګانه ښځو د خلوت نه ځان وساتئ.

[17]- الاختلاط بين الجنسين في الميزان / دوكتور خالد بن عثمان السبت ص ٢٣ ، مجموع فتاوى ابن باز ٣٢١/١.
[18]- رواه البخاري : ٥٢٣٢.

**دوهم دليل :**

ابن عباس رضى الله عنه روايت کړى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:«لا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ وَلا تُسَافِرَنَّ امْرَأَةٌ إِلا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ»[19] .

ژباړه: هيڅ بيګانه سړى به د بيګانه ښځې سره خلوت نه کوي او هيڅ ښځه دې بدون له محرم څخه سفر نه کوي.

**دريم دليل :**

له جابر رضى الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: «من كان يؤمن بالله واليوم الآخر فلا يخلون بامرأة ليس معها ذو محرم منها، فإن ثالثهما الشيطان»[20] .

ژباړه: څوک چې پر الله او ورځ د آخرت ايمان لري هغه دې د ښځې سره چې محرم يې نه وي اختلاط او کېون نه کوي ځکه چې دريم يې شيطان دى.

[19]- رواه البخاري، برقم ١٨٦٢، ومسلم، برقم ١٣٤١ .
[20]- مسند الإمام أحمد، برقم ١٧٧، وعبد الرزاق، برقم ٢٠٧١٠، وصححه الألباني في سلسلة الأحاديث الصحيحة، برقم ٤٣٠.

په پورته حديث شريف کې د ښځې سره د کېون او اختلاط څخه منع شوې مګر دا چې محرم ( پلار ، ورور ، خاوند ، زوی .... او نور محارم ) يې ورسره وي ،دغه نص په دې باندې واضح دلالت کوي چې د ښځې لپاره په مختلط ځای کې تعليم او کار کول جواز نلري.

**ځلورم دليل :**

ابی سعيد رضي الله عنه روايت کوي چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم حضور ته ښځې راغلې او ويې ويل : «يا رسول الله ما نقدر عليك في مجلسك من الرجال، فواعدنا منك يوماً نأتيك، فقال: موعدكن بيت فلان، وأتاهن في ذلك اليوم ....»[21].

ژباړه: ای رسول الله صلى الله عليه وسلم! مونږ نشو کولای د نارينوو په مجلس کې کېون وکړو،نو زمونږ د پاره د يوې ورځې وعده وکړه تر څو په هغه ورځ مونږ تاته راشو (د درس د پاره)،رسول الله صلى الله عليه وسلم وويل: ستاسو وعده د فلاني په کور کې، او په همغه تعين شوی ورځ راغلې .

نو له کومه ځايه څخه مو د نارينه او ښځو کډ تعليم او کډ کار ته اجازه ورکړې ده؟

[21]- صحيح، أخرجه أحمد وابن حبان.

آیا ددې حدیث په مقصد نه پوهیږئ ؟

او یا ډیموکراسۍ ستاسې عقلونه یرغمل کړي دي چې پر حدیث باندې نه پوهیږئ ؟

دا حدیث د نبوت په دوره کې د نارینه او ښځو تر منځ د جلاوالي واضح دلیل دی مګر زمونږ په زمانه کې دیموکراسۍ د نارینه او ښځو تر منځ کډون او اختلاط مباح ګرځولی دی ، لعنت دې وي پر دغه دیموکراسۍ .

نن چې څه غواړئ هغه وکړئ ، تاسې چې څه تر سره کوئ نو الله تعالی د هغه لیدونکی دی.[22]

او رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«إِذَا لَمْ تَسْتَحِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ»[23]

ژباړه: هر کله چې شرم او حیا ونه لرې څه دې چې غوښتل هغه وکړه .

---

[22]- الاختلاط بين الرجال والنسآء / د. سعيد بن علي بن وهف القحطاني ص ٦١ .

[23]- رواه البخاري .

پنځم دليل :

ابی اسيد انصاري رضی الله عنه وايي : رسول الله صلی الله عليه وسلم نارينه او ښځينه وليدل چې په لاره کې سره کډ وو (يو ځای تلل) نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ښځو ته وفرمايل : «اسْتَأْخِرْنَ فَإِنَّهُ لَيْسَ لَكُنَّ أَنْ تَحْقُقْنَ الطَّرِيقَ، عَلَيْكُنَّ بِحَافَاتِ الطَّرِيقِ»[٢٤]

ژباړه: ای ښځو! د لارې يو څنګ ته ځئ، تاسې د پاره د لارې په وسط کې تلل جايز نه دي، تاسې بايد د لارې او سرک په غاړه لاړې شئ.

**دريم : اجماع علماء**

دوکتور سعيد بن علي بن وهف القحطاني رحمه الله پخپل کتاب «الاختلاط بين رجال و النسآء» کې وايي :

د بيګانه نارينه او ښځو د کډون او اختلاط په حرمت باندې د علماوو اجماع ده،د نبی صلی الله عليه وسلم د عصر څخه تر نن

[٢٤]- رواه ابی داؤد : ٥٢٧٢ .

پورې ما ته داسې کوم عالم معلوم نه دی چې هغه دې نني اختلاط ته چې د فتنې سبب دی جواز ورکړی وي .

ابوبکر العامري ( وفات :٥٣٠ هـ ) وايي : د امت علماء په دې باندې اتفاق لري چې هر څوک د بيګانه نارينه او ښځو په اختلاط باندې باور ولري يعنې هغه حلال وګڼې نو هغه کافر شو د ارتداد په سبب به قتل کيږي او څوک چې د هغه په تحريم باندې باور لري مګر دغه کار تر سره کوي او د هغه په اړه يې سکوت او اقرار کړی وي فاسق دی ګواهي يې د قبول وړ نه ده[٢٥] .

او همدې اتفاق ته پخپل وخت کې د ازهر شيخ محمد الحضر حسين (وفات :١٣٧٨هـ) داسې اشاره کوي :

په دين کې د جنسينو (نارينه او ښځو ) تر منځ اختلاط حرام دی لکه څنګه چې زمونږ په ټولنه کې عامو مسلمانانو ته معلوم دی او لکه څنګه چې د دوی د خاصو علماوو لخوا تعريف شوی دی او په دې اړه د حرمت دلائل په قرآن، سنتو او د سلفو په سيرت کې موجود دي او دا په دين کې يو پيژندل شوی باب دی[٢٦] .

---

٢٥- ( ) أحكام النظر إلى المحرمات، العامري، ص ٨٣.
٢٦-

او شيخ صالح بن فوزان الفوزان وايي : د نارينه او ښځو تر منځ کېدون او اختلاط په کتاب الله، سنتو او اجماع حرام دی[٢٧] .

او د لبنان عالم شيخ محمد خطيب وايي :

« د اختلاط په حرمت دوه تنه مسلمانان هم اختلاف نلري ،يعنې په حرمت يې د مسلمانان اتفاق دی او څوک چې زړه او غوږونه لري او هغه ګوري نو د هغه د اضرارو او مفاسدو څخه انکار نشي کولای .

**او شيخ عبدالله بن جارالله وايي:**

د کويت د ټولنيزې اصلاح ټولنې د اسلامي نړۍ د بيلابيلو ځايونو څوارلسو علماوو او فقهاوو ته دا سوال وړاندې کړ چې په اسلام کې د نارينه او ښځينه زده کوونکو تر منځ کېدون او اختلاط څه حکم لري او د هغو ضررونه څه دي ، نو هر يو يې په تحريم باندې حکم ورکړی وو او د قرآنکريم څخه د «النور » او «الاحزاب» په سورتونو باندې يې فتوی ورکړي وه کوم چې د اختلاط او تبرج په حرمت او د حجاب پر وجوب او پخپلو کورونو کې پر پاتې کيدو باندې دلالت کوي .

**او شيخ فريح البهلال وايي** : او په دې مسئله باندې د علماوو اتفاق تواتر ته رسيدلی دی يوازې د دغه مسئلې په باره کې د (٣٠٠) څخه زيات تأليفات شوي دي کوم چې د بيګانه خلکو څخه د ښځې د مخ پټولو پر وجوب او د اختلاط، مخ لوڅې او تبرج پر حرمت او

27

خطر ليكل شوي دي.

او همدارنګه هغه وايي : پوه شه اى ګرانه وروره ! څوک چې پر الله او ورځ د آخرت ايمان لري نو هغه دې پوه شي چې د مؤمنانو ښځو لپاره له بيګانه خلكو څخه حجاب فرض دى او د هغوى لپاره لوڅ مخ وتل او د زينت او سينګار ښكاره كول او د نارينه وو سره اختلاط كول د ستا د رب په كتاب او ستا د نبي محمد صلى الله عليه وسلم په سنتو او د مسلمانو علماوو په اجماع او په صحيح اعتبار او قياس يې حرمت ثابت دى .

نو د اختلاط په حرمت د سلفو له عصر څخه تر نن پورې اتفاق دى هيڅ چا د هغه طرف ته دعوت نه دى كړى بلكې منافقينو او يا د هغه څخه مخكې څنې ناپوهانو تر دې پورې چې كله په دغه عصر كې طاغوتي ديموكراسي راغله نو د نارينه او ښځو تر منځ يې اختلاط مباح وګرځولو .

## د معاصرو فقهاوو فتاوې:

و جاء في فتاوى اللجنة الدائمة (١٢/١٥٦):

الاختلاط بين الرجال والنساء في المدارس أو غيرها من المنكرات العظيمة، والمفاسد الكبيرة في الدين والدنيا، فلا يجوز للمرأة أن تدرس أو تعمل في مكان مختلط بالرجال والنساء، ولا يجوز لوليها أن يأذن لها بذلك.

ژباړه: په مدارسو او مكاتبو او نورو ځايونو كې د سړيو او ښځو تر مينځ اختلاط ستر ګناه او د دنيا او آخرت عظيم فساد دى، ښځې ته جايز نه ده چې د سړيو او

ښځو په مختلط ځای کې تعليم زده کړي او د ښځې سرپرست ته جايزه نه ده چې هغې ته اجازه ورکړي.

**فتوی علامه شيخ عبد المحسن بن حمد العباد:**

ښځې ته د موټر چلولو دنده ورکول او د هغې کېدون او اختلاط له نارينه سره د فاسدې ډيموکراسی څخه دی هغه ډيموکراسي چې مسلمانانو د خپلو دوښمنانو څخه را وارده کړې ده[28] ، الله سبحانه وتعالى فرمايي :

[وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ أَنْ يَفْتِنُوكَ عَنْ بَعْضِ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ][29] .

**ژباړه:** او دا چې ته د دوی په مينځ کې فيصله کوه په هغه څه سره چې الله نازل کړی دی او ته د دوی د خواهشاتو پيروي مه کوه او ته له دوی نه محتاط اوسه (هسې نه) چې دوی تا له ځينو (حکمونو) نه واړوي، چې تا ته الله نازل کړي دي.

او فرمايي : [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تُطِيعُوا الَّذِينَ كَفَرُوا يَرُدُّوكُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ فَتَنْقَلِبُوا خَاسِرِينَ][30] .

ژباړه : ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! که چېرې تاسو د کافر شويو کسانو خبره ومنئ (، نو) هغوی به تاسو (له دين نه) په شا وګرځوي، بيا به تاسو داسې شئ چې تاوانيان به يئ.

[28]- كتاب: لماذا لا تقود المرأة السيارة في المملكة العربية السعودية، للعلامة عبد المحسن بن حمد العباد البدر، ص ٩- ١٣.

[29]- سورة المائدة، الآية: ٤٩.

[30]- سورة آل عمران، الآية: 149

او فرمايي : [وَلَنْ تَرْضَى عَنْكَ الْيَهُودُ وَلَا النَّصَارَى حَتَّى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ قُلْ إِنَّ هُدَى اللَّهِ هُوَ الْهُدَى وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُمْ بَعْدَ الَّذِي جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ مَا لَكَ مِنَ اللَّهِ مِنْ وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ] [31]

ژباړه : او له تا نه خو به هيڅكله نه يهوديان راضي شي، او نه نصرانيان، تر دې چې ته د دوی د دين پيروي وكړې.، ته ووايه: بېشكه د الله هدايت، هُم هغه (اصل) هدايت دی، او يقينًا كه تا، له دې نه پس چې تا ته علم راغی، د هغوی د خواهشاتو پيروي وكړه، (نو) تا لره د الله (له عذاب) نه (خلاصونكی) نه څوك دوست شته او نه كوم مددګار.

**مركز الفتاوی الاسلام ويب :**

د نارينه او ښځو تر منځ اختلاط حرام او مفاسد يې ښكاره دي :

الحمد لله والصلاة والسلام على رسول الله وعلى آله وصحبه أما بعد:

په نن عصر كې چې د نارينه او ښځو تر منځ كوم اختلاط خپور دی حرام دی، ځكه چې الله تعالى د نارينه او ښځو تر منځ اختلاط حرام كړی مګر دا چې محارم وي ځكه چې دا كار د فساد سبب دی او په دې باره كې دلائل زيات دي [32] (دا دلائل پورته بيان شول).

---

[31]- سوره البقره : ١٢٠ .

[32]- اسلام ويب رقم الفتاوی : ٢٥٢٣٣٥٣٩ .

فتوى شيخ عبدالرحمن بن ناصر البراک :

د ضرورت پر مهال په مختلط پوهنتون کې زده کړه کول څه حکم لري ؟

ځواب : په مختلط پوهنتون کې زده کړه کول جواز نلري، د مختلط پوهنتون معنی دا ده چې په هغه کې ښځې او نارينه سره کډ او يو ځای وي، دا د فجور او فساد د خپريدو ستره لاره ده، ځوانې نجوني او هلکان سره يو ځای کيږي او په چوکيو کې سره کيني او ټول په يو اتاق کې سره را ټوليږي او دا کار په امت کې د فحشآء د خپرولو دروازه ده[٣٣].

فتوى شيخ عبدالرحمن بن ناصر البراک :

د بالغ هلک داخليدل بيګانه ښځو ته چې په وړوکتوب کې يې تربيه کړې وي څه حکم لري؟

ځواب: د بالغ هلک داخليدل او اوسيدل له بيګانه ښځو سره جواز نلري که څه هم په وړوکتوب کې يې تربيه کړې وي کله چې بالغ شي نو داسې دی لکه نور بيګانه کسان بلکې ښځه به د هغه څخه پرده

[٣٣]- فتاوى شيخ عبدالرحمن بن ناصر البراک نمبر فتوى : ٣٣٥٣.

او حجاب کوي، لقوله سبحانه وتعالى : [أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا عَلَى عَوْرَاتِ النِّسَاءِ][34] .

ژباړه: يا هغو وړو هلکانو (ماشومانو) ته چې د ښځو په اسرارو او پټو خبرو واقف شوي نه وي.

نو دغه ښځې د نوموړي هلک خپلوانې او محرمې نه دي نو هغوى ته جايزه نه ده چې هغه ته د داخليدو اجازه ورکړي او د هغه څخه پرده وکړي ، والله اعلم .

عبدالرَّحمن بن ناصر البرَّاك- ١٧ جمادى الآخرة ١٤٣٦هـ.ق

**د شيخ محمد الأمين بن محمد المختار الشنقيطي د اوږدې فتوى يو برخه :**

د نارينه او ښځو تر منځ اختلاط او کېدون په قرآن او سنتو حرام دی، په نن عصر کې په ډېرو کې د الله تعالى ويره نشته (الا ما شآء الله ) او په هغوى کې بد اخلاقي خپره ده او د فرنګي کفر ټولو اخلاقي ارزښتونو ته يې سر ټيټ کړی دی .

---

[34]- سوره النور :٣١ .

پوه شئ چې د زنا د وصول د ټولو وسايلو مخنيوی پر مسلمانانو واجب دی، معلومه خبره ده چې د بيګانه نارينه او ښځو تر منځ په پوهنتونو کې اختلاط دی او دا کار د اروپا په پوهنتونو کې يو معمولي کار دی .

اختلاط د زنا وسيله ده لکه څنګه چې نن سبا ليدل کيږي د هغه لپاره دليل ته ضرورت نشته او څوک د هغه څخه انکار نشي کولای مګر کبرجن .

او وروسته عرب مسلمانو پلرونو ته په خطاب کې وايي :

ستاسي عربي شهامت چې د نورو پيړيو څخه درته ميراث شوی وو څه شو ؟

څنګه مو خپلې لوڼې پريښې چې بې حجابه ووځي او هغه چا ته يې سر ټيټ کړی چې غواړي د دوی د مفد کتلو او نظر څخه استفاده وکړي ... هغه ناپوهه کسان کوم چې د دوی د شرف او فضيلت دوښمنان دي .

او ضرور ده چې تاسي ته د دوو مهمو ټکو يادونه وکړم :

لومړی ټکی :

د بې حجابۍ او اختلاط اصلي بنسټ د قرآن څخه څرګندیږي هغه دا چې شیطان د آدم او د هغه د میرمنې او د هغه د اولادې دوښمن دی ، لقوله سبحانه وتعالی : [إِنَّ هَذَا عَدُوٌّ لَّكَ وَلِزَوْجِكَ ][35]
ژباړه: بېشکه دا (ابلیس) ستا او ستا د ښځې دښمن دی.
او فرمایي : [إِنَّ الشَّيْطَانَ لَكُمْ عَدُوٌّ فَاتَّخِذُوهُ عَدُوًّا إِنَّمَا يَدْعُو حِزْبَهُ لِيَكُونُوا مِنْ أَصْحَابِ السَّعِيرِ][36].
ژباړه: بېشکه شیطان ستاسو دښمن دی، نو تاسو هغه دښمن وګڼئ، یقینًا همدا خبره ده چې هغه خپله ډله رابلي، د دې لپاره چې دوی له دوزخیانو څخه شي.
او الله سبحانه وتعالی فرمایي :[أَفَتَتَّخِذُونَهُ وَذُرِّيَّتَهُ أَوْلِيَاء مِن دُونِي وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ بِئْسَ لِلظَّالِمِينَ بَدَلاً][37].
ژباړه: ایا نو تاسو له ما نه غیر هغه او د هغه اولاده دوستان جوړوئ، حال دا چې دوی ستاسو دښمنان دي، او د ظالمانو لپاره بد بدل دی.
ښکاره خبره ده چې شیطان د آدم او د هغه د ښځې او د هغه اولادې سخت دوښمن دی او د ټولو وسایلو په کارولو سره د هغوی د دنیا او آخرت د سپکاوي او اهانت په هڅه کې دی او ښکاره ده چې تر

[35]- سوره طه :۱۱۷.
[36]- سوره فاطر :۶ .
[37]- سوره الکهف :۵۰ .

ټول ستر ادبي اهانت د انسان د عورت لوڅيدل دي او د هغه د جامو ويستل دي .

او د ابليس لخوا د آدم او د حوا لومړی اهانت هغه وو چې دوی ته يې وسوسه ور واچوله او د دوی جامې وغورځيدې او د جنت د ونو په پانه يې ځانونه پټول .

او د دغه کشف عورت څخه د ابليس اصلي مقصد د انسان سپکاوی او د هغه انساني شرافت او کرامت له منځه وړل دي او همداسې شيطان هميشه په دې هڅه کې دی چې څنګه د آدم د اولادې اهانت وکړي عربو به د جاهليت په وخت کې د بيت الله شريف څخه په داسې حالت کې طواف کولو چې بدن به يې لوڅ وو ، حتى عورت به يې لوڅ وو.

او دا ټول د ابليس لخوا د آدم د اولادې اهانت دی او د دغه اهانت څخه د هغه بل مقصد د فاحشې خپرول دي.

د شيطان دغه سپکاوی او اهانت تر هغه وخت پورې دوام درلود څو الله تعالى اسلام نازل کړل او دغه ناوړه کړنې او فحاشت يې باطل وګرځول .

او د وخت په تيريدو سره د آسماني وحی څخه خلکو مخ واړولو او دين ضعيف شو نو شيطان ته د اهانت زمينه برابره شوه کافر هيوادونو کې د پرمختګ ترقي او تمدن په نوم ښځو څخه جامې

ويستلې شوې او د ښځو لوڅ تصويرونه په مجلو او اخبارونو کې خپريدل او د فاحشې خپريدل او د د زنا اولاد چې د حساب څخه وتلي دي او دا کار په اوروپا او نور کې معلوم او ښکاره دی او بيا شيطان هڅه وکړه چې د مسلمانانو هم همداسې اهانت وکړي لکه د آدم او حوا يې چې کړی وو نن د اسلامي هيوادونو په ټولنو ، محفلونو او لارو کې بې حجابه ښځې ليدل کيږي چې تنګ او نری جامې اغوندې چې د فتنو ځايونه يې ورڅخه څرګنديږي .

الله تعالی دی د خپل دين او خپلې کلمې د لوړوالي نصرت وکړي او الله تعالی دې مسلمانانو ته دا پوهه او بصيرت ورکړي تر څو حق وپيژني .

**دوهم ټکی :**

مونږ خپلو مسلمانانو ورونو ته دا تنبه ورکوو چې : د غرب په تمدن کې ځنې شيان ګټور او ځنې مضر دي او کوم چې ګټور دي د هغوی مادي امکانات او وسائل دي، مونږ کولای شو هغه شيان چې زمونږ د دنيا لپاره ګټور وي د خپل رب د تعليماتو په رڼا کې د هغه د لاس ته راوړلو لپاره کوښښ وکړو ځکه چې الله تعالی مونږ ته حکم کړی دی :[ وَأَعِدُّواْ لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ][38] .

[38]- سوره الانفال:۶۰ .

او هغه چې ضررناک دي : د هغوی د انساني اخلاقو او کرامت او شرافت زوال او د آسماني تعليماتو ترک کول دي چې دا ټول مضر د انساني اخلاقو او کرامت لپاره شر او ضرر دی .

نو د اختلاط نتايج دا دي چې : د فحاشت او جرايمو زياتوالی، د غير شرعي اولاد زياتوالی او دا هر څه ښکاره او معلوم دي بيان ته يې ضرورت نشته پر هغو کفايت کول پکار دي کوم چې د پرمختللو هيوادونو په جريدو او مجلو کې خپريږي لکه د حرامي اولاد زيادت او د حمل او جنين له منځه وړلو لپاره د درملو کارول .

د الله څخه سوال کوم چې مونږ ټولو ورونو ته د الله تعالی د محبت او رضا توفيق راکړي و السلام عليکم ورحمة الله وبرکاته

فضيلة الشيخ محمد الأمين بن محمد المختار الشنقيطي[٣٩] .

**په عراق کې د «رابطة العلماء» ټولنې رئيس عبدالقادر خطيب وايي :**

د نارينه او ښځو تر منځ اختلاط د پرديو رواج او عادت دی نو هر چا چې د هغه د رواجولو سره مرسته کړې د ټولو هغو کسانو ګناه به يې پر غاړه وي کوم چې وربانديې اخته دي برابره خبره ده که هغه

[٣٩]- حکم الاسلام في الاختلاط : فتاوى علماء الکويت و العالم الاسلامي ص ٦٧-٨٧.

په پوهنتونو کې دي او يا ټولو علمي مراکزو ،دفاترو او ټولنه کې دي[٤٠].

**په کويت کې د فتاوی د هيئت رئيس عبدالله النوري و ايي :**

زه ګمان کوم چې داسې څوک به نه وي چې هغه په اسلام کې د اختلاط له حکم څخه ناخبره وي پرته له هغو چې زړونه يې زنګ شوي دي نو هغوی د خپلې هوا پيروي کوي ،اسلام د بيګانه ښځو او نارينه تر منځ اختلاط حرام ګرځولی دی مګر هغه چې محارم وي[٤١].

**محمد احمد مقيم مصري و ايي :**

د حرام اختلاط له صورتونو څخه يو هم په مکاتبو، معهدونو او پوهنتونو کې اختلاط دی او په دندو کې اختلاط دی[٤٢].

[٤٠]- حكم الإسلام في الاختلاط، جمعية الإصلاح، ص ٥١.
[٤١]- حكم الإسلام في الاختلاط، جمعية الإصلاح، ص ٨.
[٤٢]- عودة الحجاب، المقدم، ٣/ ٥٦

## دوهم فصل

## د اختلاط ضررونه

يقيناً چې د اسلام مبارک دين کوم شی حرام کړي وي نو په هغه کې د انسان لپاره دنيوي او اخروي اضرار موجود وي او څه يې چې حلال ګرځولي دي په هغه کې د انسان ټول مصالح او ګټې خوندې دي .

اوس د تاسې حضور ته د اختلاط څو ضررونه وړاندې کوم په کومو چې غربان هم اعتراف کوي .

### ١- د ذهن کمزوري :

په آلمان او بريطانيا کې تر سره شويو څېړنو دا په ثبوت رسولې چې په کومو مکاتبو کې چې نارينه او ښځينه زده کوونکي کډ او مختلط دي نو د هغوی ذهني قوه کمزورې ده .

د «الرياض» جريده ليکي :

د بريطانيا حکومت د داسې مکاتبو د جوړېدو حکم صادر کړی وو چې په هغو کې بايد نجونې او هلکان جلا وي، د دغه حکم له مخکې

په ځنو مکاتبو او تعليمي مؤسساتو کې د نارينه او ښځو تر منځ جلاوالی را منځته او د هغوی تولګي جلا شول کله چې د ۱۴۱۲/۱۴۱۳ هـ.ق تعليمي کال نتايج اعلان شول نو د (۷۵) مکاتبو څخه د (۷) مکاتبو نتايخ ډير ښه وو دا ځکه چې په دغو مکاتبو کې اختلاط نه وو او د پاتې مکاتبو نتايج ښه نه وو ځکه چې په هغو د نجونو او هلکانو تر منځ اختلاط موجود وو، نو کله چې دا حيرانوونکي نتايج وليدل شول ډيرو مفکرينو د غير مختلط تعليمي سيستم غوښتنه وکړه [43].

او ددې ذهني کمزورۍ سبب دوه څيزونه دي [44] :

الف):- د يو جنس فکر او ميلان بل جنس ته وي :

د «المصور» مجلې د مصري پوهنتونونو د زده کوونکو په اړه دا مطلب خپور کړی : « د هغوی څخه ٪۶۵ په دې باندې اعتراف کوي چې د اختلاط او کېدون پر مهال د خپل مخالف جنس په فکر کې وي چې پر زده کړو يې ژور تأثير کړی دی او د هغوی د فراغت د

[43] - جريدة الرياض : عدد ۱۱۴۴۷ .
[44] - اختلاط / ص ۱۱۹ .

وخت دریمه حصه د محبت او لهو په خبرو تیریږي نو ځکه هغوی د جلا زده کړو غوښتونکي دي »[٤٥]

د فرانسي د علمي څیړنو د وطني مرکز غړی او د ځوانانو او سپورت د وزیر پخوانی مشاور (میشل فیز Michelle fiz) وایي : « په زده کړه کې د هلکانو او نجونو تر منځ جلاوالی د زده کړې لپاره ستر فرصت برابروي نو ځکه مونږ غوښتنه کوو چې غیر مختلط نظام را منځته شي تر څو د تعلیم سطحه لوړه او نتیجه یې ډیره ښه شي »[٤٦] .

غرب په تعلیم کې د اختلاط ښخه مخنوي پیل کړی :

په بریطانیا کې د «شنفلید» په نوم ثانوي مکتب چې د «ایسکس» په ولسوالۍ کې موقعیت لري په کال د ١٩٩۴ م کې د نارینه او ښځینه زده کوونکو تر منځ ټولګي جلا کړل چې ډیره ښه نتیجه یې ورکړه د انګلسي په مضمون ٪٢٦ ممتاز درجه او ٪٢٢ اعلی درجې تر لاسه کړې.

[٤٥]- المصور مجله / ١٨/٠٨/١٣٧٥ .
[٤٦]- الاعجاز التشریعي في منع الاختلاط / لقسطاس النعیمي.

همدارنګه د امریکې د هغه وخت رئیس جمهور په کال د (۲۰۰۳) کې اعلان وکړ چې مونږ په امریکا کې د لومړي ځل لپاره د داسې تعلیمي مؤسساتو پیلول غواړو چې نارینه او ښځینه پکې جلا وي .

دغه بیان د امریکې په رسمي فیدرالي جریده کې خپور شوی او همدارنګه په دغه جریده کې راغلي وو چې : د تعلیم او تربیې وزیر نیت لري تر څو په تعلیمي سیستم کې نوي تنظیمات رامنځته کړي داسې چې د نارینه او ښځینه تر منځ تولګي جلا شي تر څو په درسي نظام کې ښه نتیجه تر لاسه شي .

همدارنګه د نومړي وزیر په ۲۰۰۲/۵/۸ نیټه کې یو بیان خپور شو چې ویلي وو : د تعلیم او تربیې وزارت نیت لري تر څو داسې مکاتب رامنځته کړي چې د یوه جنس څخه وي (غیر مختلط) نو وزارت د زده کوونکو له والدینو څخه غواړي چې ددغه موضوع لپاره خپل نظریات را ولیږي .

ب):- د جنسي میلان پر مهال ذهن سالم کار نه کوي :

الکسیس کاریل (Alexis Carrel) پخپل کتاب کې لیکي :

د جنسي غدې او عقلي پراختيا تر منځ اړيکه ښکاره ده، کله چې د انسان جنسي غوښتنه په حرکت راشي نو جنسي عده د وينې له لارې يو ډول ماده دوماغ ته افرازوي نو دغه مهال دماغ خمار شي او د سليم او صاف فکر توان نلري او فکر معشوش وي[٤٧] .

## ٢- د فاحشې خپريدل :

د اختلاط نتيجه فحاشت دی او ددې څخه هيڅوک انکار نشي کولای .

په عربو کې د جاهليت په زمانه کې يوه فصيحه شاعره او هوښکار او په ټولنه کې مشهور او د عزت خاونده ښځه وه، يو وخت له يو غلام سره زنا کوي او بيا هغې ته دا پيغور جوړيږي چې فلانۍ له فلاني غلام سره زنا کړې، له هغې څخه چې کله وپوښتل شول چې ولې د داسې وکړل ته يوه هوښکاره ښځه او دا کس غلام ؟ نو هغې په ځواب کې وويل :«طول السواد و قرب الوساد (ډيرې خبرې او د هغه سره کېون او اختلاط) »[٤٨] .

---

[٤٧]- الانسان ذلک المجهول (ص ١٦٦-١٦٧) ، اختلاط / ص ١٢١.
[٤٨]- البيان و التبيين للجاحظ (٣٢٤/١).

د غرب يوه ډاکتره (ماريون Maryon) په دې باندې اعتراف کوي چې : « زه باور لرم چې کله د زيات وخت لپاره د نارينه او ښځې تر منځ علاقه او کېدون وي نو هغه د شهوت پالنې پرته امکان نلري »

د بريطانيا په لندن کې «راشيل بريتشرد» يوې غوندې ته چې عنوان وو «په غرب کې د ښځې حالت» د جرايمو هغه ارقام او شميرې وړاندې کوي چې د نارينه او ښځينه زده کوونکو د اختلاط له امله رامنځته شوي دي چې په لاندې ډول دي:

- په بريطانيا کې په مختلطو مکاتبو کې د غير مشروع جنسي اړيکو له امله د ځوانو حامله شويو نجونو نسبت ۷۵٪ دی .
- او په همدې هيواد کې د غير مختلطو مکاتبو او علمي مؤسساتو کې د ځوانو حامله شويو نجونو نسبت ۵٪ دی .
- او په همدې هيواد کې په اسلامي مکاتبو او مدارسو کې چې اختلاط پکې منع دی صفر ٪ دی .

په امريکا کې د هلکانو د جناياتو د محاکمې رئيس (لندس Linds) پخپل کتاب کي ځنې شميرې داسې بيان کړي : له دغو ارقامو او

شميرنو ځخه د نارينه او ښځو تر منځ د اختلاط ضررونه دي كوم چې د دغه كېدون او اختلاط په وجه د ٪۷۰-٪۹۰ په مختلفو ځايونو كې د زنا په جرم باندې مرتكب شوې دي .

تر دې چې پوهنتونونه او د زده كړو مركزونه هم ددې آفت ځخه خوندي نه دي، د پوهنتون استاذ له زده كوونكې سره فاحشه كوي، او نارينه زده كوونكي له ښځينه زده كوونكو سره په رضا او يا زور سره فحاشت كوي او دغه ارقام او شمير نيمه پېړۍ مخكې بيان شوې نو اوس به ځه حال وي [٤٩] .

همدارنګه امريكايي پروفيسور د كاليفورنيا په پوهنتون كې د علم نفس استاد «ميري كاكووس » وايي :

د پوهنتون د پنځو زده كوونكو نجونو ځخه پر يوه باندې جنسي تيرى شوى دى چې په دغو حالاتو ٪۵۱ باندې د زنا تيرى شوى دى .

او د ثانوي دورې پر مهال د هرو آتو ځوانو نجونو سره پر يوه باندې جنسي تيرى شوى دى.

[٤٩]- اختلاط / ۱۳۱ ص ، مجلة الدعوة ، العدد (۱۷۸۳)

يعنې ٪۲۱ ښځو باندې د بلوغ ځخه مخکې يعنې د ۱۴ کلنۍ څخه مخکې جنسي تيرى شوى دى مګر دا شميرې دقيقې نه دي کيداى شي نسبت يې زيات وي ځکه يوازې ٪۱۰ ښځو او نجونو پوليسو ته شکايت کړى دى.

او د زنا د جرم سره بيا نور سخت جرمونه تړل شوى دي چې د جنين او حمل قتل، د زنا اولاد ،دوښمني او قتل دى چې دا هر څه معلوم دي او نړۍ ستاسې مخکې ته ده نو د هر يو جلا بيان ته ضرورت نشته .

## ۳- خطرناک جنسي امراض :

د نارينه او ښځينه د کېدون او اختلاط په وجه خطرناک جنسي امراض را منځته کيږي :

د ښځينه نارغيو د جراحي فرانسوى مختصصه وايي : د زياتو جنسي امراضو سبب د نارينه او ښځو تر منځ غير مشروع اختلاط دى، کچيرې مونږ د دغه ستونزې اصلي بنسټ ته نظر وکړو نو مونږ به دا ومومو چې ددې اصلي سبب دا دى چې ښځه او سړى د

هغې حیا څخه خالي دي کوم چې الله تعالی د ښځې او سړي لپاره ټاکلی ده نو کله چې انسان د حیا څخه خالي شو نو د انساني طبیعت او فطرت مخالفت يې وکړ.

یعنې اختلاط د انساني طبیعت او انساني حیا مخالفت دی نو کله چې دغه مخالفت رامنځته شي په ټولنه کې فتنه خپریږي او ددې څخه وروسته ناروغي خپریږي[50].

په امریکا کې ځنې شمیرې څرګندوي چې په دغه هیواد کې ۶۵ میلیونه کسان په داسې جنسي نارغیو باندې اخته دي چې علاج نلري[51].

او په بریطانیا کې څیړنې څرګندوي چې « دلته په هر مکتب کې زده کوونکي په ایډز مبتلاء دي کوم چې د اختلاط نتیجه ده[52].

او د بوتسوانا او سوازیلانډ په هیوادونو کې په ایډز باندې د اخته کسانو نسبت ۴۰٪ ته رسیدلی چې تقریباً د دغو هیوادونو نیمايي

[50]- اختلاط بین رجال و النسآء ص ۱۳۹ ، من أجل تحریر حقیقي للمرأة (ص ۱۴۹-۱۵۰).
[51]- http://www.cnn.com/2000/HEALTH/12/05/health.reut/
[52]- الغرب يتراجع عن التعليم المختلط ص ۸ للدكتور بفرلي شو .

کسان ورباندې اخته دي، او د بوتسوانا د هيواد متوسط عمر ۳۳ کاله دی او د اوسيدونکو شمير يې له کمښت سره مخ دی او دا ټول د ايډز د خپريدو له امله دی کوم چې له فاحشې ښځه پيدا کيږي او د دغه هيواد اوسيدونکي نصارا او بت پرستان دي [٥٣].

## ۴- د حيا او شرم زوال :

حيا او شرم د ژوند اوبه دي د ناوړو کارونو ښځه د ساتنې فطري ديوال دی، جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : «إِذَا لَمْ تَسْتَحِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ» [٥٤]

ژباړه: هر کله چې شرم او حيا ونه لرې څه دې چې غوښتل هغه وکړه .

د کوم سړي او يا ښځې ښځه چې حيا ولاړه نو په هغو کې څه خير نشته .

[٥٣] - http://www.who.int/hiv/pub/epidemiol>>>e2003_I_en.pdf ، فتاوى علماء العالم الاسلامي / دوکتور عبدارحمن بن سعد الشتري .
[٥٤] - رواه البخاري .

د مسلم شريف په يو روايت کې راغلي چې ټول خير په حيا او شرم کې دى « الْحَيَاءُ خَيْرٌ كُلُّهُ ».

ځکه حيا د ايمان برخه ده «الحياء من الايمان»

او حيا د اسلام ستر خصلت دى .

انس رضى الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:«إِنَّ لِكُلِّ دِينٍ خُلُقًا وَخُلُقُ الإِسْلاَمِ الْحَيَاءُ»[٥٥] .

ژباړه : د هر دين لپاره اخلاق دى د اسلام اخلاق حياء ده .

او رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلى: «الْحَيَاءُ وَالْإِيمَانُ قُرِنَا جَمِيعًا، فَإِذَا رُفِعَ أَحَدُهُمَا رُفِعَ الْآخَرُ»[٥٦] .

ژباړه :حيا او ايمان دواړه سره جوړه او تړلي دي کله چې يو پورته شي نو بل هم ورځخه پورته کيږي .

[٥٥]- رواه ابن ماجه ، حديث حسن .

[٥٦]- رواه الحاكم وقال صحيح على شرط الشيخين، ووافقه الذهبي.

فضيل بن عياض رحمه الله وايي : د بدبختۍ له نښو څخه د زړه کلکوالی، د سترګو وچوالی، د حيا او شرم نشتوالی، د دنيا سره مينه او رغبت او د اوږدو هيلو او اميدونو لرل دي.

د پوهنتون محصله أسماء أنور وايي : « په نجلۍ کې مهم شی حيا او شرم دی او د نارينه سره اختلاط د ښځې فطري حيا له منځه وړي، ځکه د اختلاط څخه مخکې د ضرورت پر مهال په لنډو ټکو خبرې کوي خو د اختلاط څخه وروسته د خبرو له اوږدولو څخه خوند اخلي او لاسونه هم ورسره ښوروي او پيل يې په مسکا او خندا سره وي، نو بې حيايي هغه د ټولو اخلاقو څخه بې برخې کوي »[٥٧]

## ٥- د دوښمنۍ سلوک :

حتی غربيان په دې باندې اعتراف کوي چې هغه هلکان او نجونې چې په مختلط ډول تعليم کوي او په مختلط ډول کار کوي د دوښمنۍ او تاوتريخوالي سلوک اختياروي .

[٥٧]- آفاق العربية ، بتاريخ ١٩/٠٧/١٤٢٠ ، اختلاط / ١٣٨

په تعليمي مرکزونو، د واده کولو وروسته کله ژوند کې او همداسې د ژوند پر مهال د دوښمنۍ او تاوتريخوالي سلوک غوره کوي ...

د بريطانيا د معلمينو د ملي ټولنې لخوا دا څيرنه او مطالعه تر سره شوې ده چې په هغو نجونو کې د دوښمنۍ سلوک زيات شوي کوم چې په مختلط ډول زده کړه کوي [58].

امريکايي مجله (Seventies Magazine) وايي :

لږ تر لږ ٪۸۹ ځوانو نجونو باندې د خپلو ټولګليوالو لخوا غير ادبي تيری تر سره کيږي .

امريکايي ليکواله پخپله بيان کې وايي : دا يو ښکاره حقيقت دی چې دا ډول غير اخلاقي سلوک اوس مهال زمونږ د ژوند يوه برخه ګرځولې ده او هغه زمونږ د ورځني ژوند څخه نه جلا کيږي [59]

## ۶- اختلاط د ښځې شر افت او حثيت له منځه وړی:

محمد رشيد العويد وايي:»نن ورځ په اوربا کې ښځو خپل ټول

---

[58] - البيان الاماراتية :۱۴۲۲/۱۰/۲۴ هـ.ق.

[59] - جريدة الرياض ، العدد(۹۱۵۰)، تاريخ ۱۴۱۴/۰۱/۲۶ هـ.ق.

ارزښت له لاسه ورکړی دی او د بدبختۍ او ذلت داسې اندازې ته رسيدلي دي چې په هيڅ ځای کې نشته، بلکي هغه يوه نانځکه (عروسک) ګرځيدلې چې لاس په لاس کيږي .

هغوی په ټولو ځايونو کې ليدل کيږي چې خادمانې دي په هوټلونو او رستورانونو کې، د بازار او لارو په بسونو کې او نورو ځايونو کې او ارزانه توکي دي چې هر ځای شتون لري.

او د هغه لوړ مقام ځخه کوم چې الله تعالی هغې ته ورکړی را ښکته شوې ده تر دې پورې چې د خپلې جامې سره په تنګ ده او زړه يې زنګ وهلی دی، او د هغې احساس پريشانه، غمګين او حيران دی پرته له دې چې د ژوند په اصلي مقصد کې فکر وکړي او د هغه برخليک په اړه فکر وکړي چې الله تعالی يې حکم کړی دی »[٦٠]

**لوديځ پوهه (فرانسوساجان) وائي:**

ای د ختيځ ښځې! هغه ځوک چې ستا په نوم چيغې او نارې وهې او تا د حجاب د کوزولو او سرې سره د مساواتو او اختلاط دګر ته رابولي دوی په تا پورې خندا او ستا توهين کوي او ترتا د مخه يې په مونږ پورې خندا او زمونږ توهين کړی.

ښځه په ژوند کې تر سړي لويه نه ده مګر په يو ځيز سره او هغه دا چې تر ځان لوی سړی جوړ کړي.

[٦٠]- اختلاط بين الرجال و النسآء / دوكتور سعيد القحطاني ، رسالة إلى حواء، ص ٨٣.

دا خلک چې د ښځې د ازادی ډنډوره غږوي:

دا تش په نامه ازادي ده، اما په معنوي لحاظ دا په رزق پسې د ښځې شړل دي.

یا په عبثیاتو او شهواتو کې د ښځې بې واکه خوشې کول دي.

یا له دین او اخلاقي نیکمرغیو څخه د ښځې راویستل دي.

(جوانا فرانسیس) امریکایي ښځه ده چې د (Feminenza) (فیمنینزا) بنسټ په نوم د ښځو د حقونو مشره ده ،د غرب د ماحول او په غربي ډیموکراسی کې د ښځو د احوالو او حقوقو څخه پرده پورته کوي او مسلمانانو ښځو ته د اوږدې مقالې په یوه برخه کې وایي:

غوږ شه ! د هغوی د مساواتو خبرې تش درواغ دي، هغوی کوښښ کوي مونږ امریکایي میرمنې په شهوت بارونکو فلمونو، سریالونو او بې حجابه جامو په درواغو خوشحاله وساتي او له خپل مسئولیت او کورني ژوند څخه مو لرې کړي، همداسې هغوی غواړي ستاسې کورنی ژوند برباد کړي.

د ښځې جسماني جاذبه باید د بې لیاقته څخه پټه وساتل شي او دا د هغه چا لپاره هدیه کړ شي چې پر تا باندې غیرت کوي، ستاسې

مېړونه نارينه دي، غيرت لري، شجاعت لري، پاکي او عفت خوښوي.

زمونږ نارينه نور پاکدامني او عفت نه خوښوي هغوی د ملغلرې پر ځای د زرق او برق واله مصنوعي ډبرې خوښوي چې سوء استفاده ور څخه وکړي او بيا يې وغورځوي.

زه متوجه شوې يمه چې ځينې مسلمانې ښځې بې حجابي خوښوي، د خپلو حدودو څخه تيری کوي د غرب د ښځو تقليد کوي او غواړي چې د غرب د ښځو پشان شي.

تاسې ولی د هغو ښځو تقليد وکړئ چې د خپل تللي عزت او عفت باندې پښېمانه دي چې هيڅ جبران نلري ؟

تاسې د بې عيبه الماس په شان ياست هغوی مه پرېږدئ چې بې قيمه ډبرې مو وګرځوي.

تاسې چې د غرب په مجلو او تلويزونو کې څه وينئ، درواغ او شيطاني دام دی.

تاسې لپاره د امن يوازنی ځای د خپل خاوند پناګاه ده . پر ما اعتماد وکړئ! مونږ اکثره خوشحاله نه يو زمونږ څخه په ميليونو د خپګان ګولی خوري.

زمونږ غربي ښځو مغزونه مينځل شوي دي او په حقيقت کې پر مونږ ظلم شوی، د موډ او فيشن غلامانې يو چې زمونږ پوست وباسي اوعزت او عفت مو ليلام شوی .

## ۷- اختلاط د ټولو فتنو او بلاوو بنسټ دی :

په پای کې ويلای شو چې د نارينه او ښځو تر منځ اختلاط لوی مصيبت او عظيم ضرر دی او په دې کې د دنيا او آخرت فساد ، د مال، اخلاقو ،عقل او نسب د له منځته تللو سبب ګرځي .

په ټولو هيوادونو کې رښتنې احصايې دا په ډاګه کوي چې اختلاط د دنيا او دين لپاره لوی خطر دی .

د دين لپاره خطر دا دی چې: ايمان ضعيفه کوي، د الله تعالی ويره او مراقبت د بنده له زړه څخه وباسي ،حيا ،عفت او پاکدامني له

منځه وړي او بلاخره ددې ډولو نتيجه د دنيا او  او ګناهونو سره د محبت سبب ګرځي .

او د دنيا لپاره خطر دا دی چې : پوه شه چې د دنيا اصلاح د دين په اصلاح کې ده او د دنيا ويجاړي د دين په ويجاړی کې ده ،اختلاط په سيمه کې امن ،استقرار ،پاکدامني ،د زوجنينو تر منځ محبت له منځه وړي د نارغيو ،فحاشت ،د نسل له منځه وړل ،دوښمنی او نورو آفاتو کوم چې مخکې مو اشاره ورته وکړه سبب ګرځي[٦١] .

[٦١]- اختلاط بين رجال و النساء / دوکتور سعيد بن وهب القحطاني ص ١١٩ .

## د غرب غیر مسلم پوهان اختلاط بندول غواړي

امریکایي لیکواله او د ځوانانو د چارو متخصصه «هیلسیا ستاتبسري» وايي:

عربي (اسلامي) ټولنه یوه کامله او جوړه ټولنه ده، اړینه ده چې د دغه ټولنې د هغو دودونو تقلید وشي کوم چې د نجونو او ځوانانو لپاره په یو منطیقي حد کې ټاکل شوي دي .

د هغوی سره داسې دودونه او اخلاق دي چې بداخلاقۍ څخه یې لرې کړي دي کوم چې د امریکا او اورپا ټولنې کوابنې .

نو ځکه زه دا نصیحت کوم چې تاسې د هغوی د دودونو او اخلاقو پیروي وکړئ او د اختلاط مخنیوی وکړئ او د ښځې آزادي محدوده کړئ بلکي د حجاب او پردې عصر ته رجوع وکړئ نو دا کار به د تاسې لپاره د امریکا او اورپا د اوسني بد اخلاقۍ او لهو لعب څخه غوره وي.[٦٢]

[٦٢]- کتاب فتاوی علماء العالم الاسلامي ص ١٩٧ .

نوموړي ليكواله بل ځاى ليكي : د ټولو بلاوو بسنټ دا دى چې ښځه د خپل كور څخه ووځي او د نارينه سره ګډه شي نو په دې وجه هغه د خپل كور څخه لرې شي او غير شرعي حمل واخلي د خپلې كورنۍ او ټولنې لپاره عار او پيغور جوړ شي پس د نارينه سره د ښځو اختلاط يا د نارينه لپاره د ښځو مزاحمت به مونږ ويجاړ او برباد كړي[٦٣] .

دوكتور سوليفان (Dr:Soliphan) وايي :

په امريكايي ټولنه كې د كورني نظام د پاشلو او زياتو جرمونږ وجه دا ده چې ښځې خپل كور پريښى نو كورنۍ نظام ضعيف شو او د اخلاقو سطحه ټيټه شوه .

تجربو دا په ثبوت رسولې ده چې د هلاكت څخه د نوي نسل د خلاصون لپاره يوازنۍ لاره دا ده چې ښځه خپل حريم ته بيرته ور وګرځي[٦٤] .

[٦٣]- مجلة المنار (٤/٣٨١).
[٦٤]- الاختلاط بين الجنسين ص ١٠٦ ، المرأة بين الفقة و القانون :ص :٢٥٣ .

جورج رائيلي (George Raely) وايي :

اختلاط د نارينه سره سيالي يا د نارينه په څير ځان جوړول دي نو ددې کار په تر سره کولو سره ښځې د فطرت مخالفت وکړ او څومره چې اختلاط زياتيږي په هماغه اندازه به د زنا اولاد زياديږي او دا دلته د ښځو لپاره ستره بلاء ده[65].

پروفسور کلين (Professor Clain) د آلمان د دولتي روغتون سر طبيب وايي:

کله چې د عقل او فکر خاوندان وغواړي داسې دين ته ور وګرځي چې په هغه کې فضيلت خوندي وي ،د ټولنې ساتنه پکې خوندي وي او د بشر د ژوند سعادت او نيکمرغې پکې خوندي وي نو دوی به اسلام يوازنی دين ومومي چې په پوره بري سره يې ددې ټولو د ساتنې ضمانت کړی دی .

[65]- مجلة المنار (۴۸۱/۴) .

اسلام داسې دين دی چې په هغه کې د ټولو اديانو نيکی او غوره والی موجود دی او په بل دين کې تاسې داسې نيکی نشئ موندلای[٦٦] .

## دريم فصل

## د اختلاط په اړه څو مهم مسائل

### په مختلط پوهنتون کې زده کړې:

په مختلط پوهنتون کې داسې چې هلکان او نجونې يکې کيږي وي زده کړه کول څه حکم لري ؟

ځواب:

په علمي مراکزو لکه : مدارس، مکاتب او پوهنتونو کې د نارينه او ښځينه زده کوونکو تر مينځ اختلاط او کېدون حرام دی عظيم شر او فساد دی ځکه د فتنې، په شهواتو او فحاشت کې د اخته کيدو سبب ګرځي،او په هغه صورت کې چې تنګې او نری جامه اغوندې نو جرم او فساد يې نور هم ستر او لوی دی..

«اختلاط الطلاب بالطالبات والمدرسين بالمدرسات في دور التعليم محرم لما يفضي إليه من الفتنة وإثارة الشهوة والوقوع في الفاحشة ، ويتضاعف الإثم وتعظم الجريمة إذا كشفت المدرسات أو

٦٦ـ / استاد الجندي : ربيع الاول :١٣٨٩ ه.ق

التلميذات شيئاً من عوراتهن ، أو لبسن ملابس شفافة تشف عما وراءها ، أو لبسن ملابس ضيقة تحدد أعضاءهن».[٦٧]

ژباړه: د ښځينه او نارينه زده كوونكو او همدارنګه د نارينه او ښځينه استاذانو تر منځ اختلاط او ګډون حرام دى ځكه چې دا كار فتنه او شهوت راني ده چې په فاحش عمل باندې د اخته كيدو سبب ګرځي،او هغه مهال چې كله تنګې او نرى جامې اغوندي چې زده كوونكي يا استاذ د عورت او فتنې ځايونه ورڅخه ښكاري نو جرم او ګناه نوره لويه ده.

« لا يجوز للإنسان رجلاً كان أو امرأة أن يدرس بمدارس مختلطة ؛ وذلك لما فيه من الخطر العظيم على عفته ونزاهته وأخلاقه ، فإن الإنسان مهما كان من النزاهة والأخلاق والبراءة إذا كان إلى جانبه في الكرسي الذي هو فيه امرأة – ولا سيما إذا كانت جميلة ومتبرجة – لا يكاد يسلم من الفتنة والشر ، وكل ما أدى إلى الفتنة والشر : فإنه حرام ولا يجوز ، فنسأل الله – سبحانه وتعالى – لإخواننا المسلمين أن يعصمهم من مثل هذه الأمور التي لا تعود إلى شبابهم إلا بالشر والفتنة والفساد ، حتى وإن لم يجد إلا هذه الجامعة

[٦٧]- فتاوى اللجنة الدائمة :٥٣/١٧ .

يترك الدراسة إلى بلد آخر ليس فيه هذا الاختلاط ، فأنا لا أرى جواز هذا وربما غيري يرى شيئاً آخر».[٦٨]

ژباړه: د انسان لپاره هغه که نارينه وي يا ښځينه په مختلط مكتب كې زده كړه جواز نلري، ځكه چې په دې كار كې د هغه اخلاقو، عفت او سپيڅتيا ته ستر خطر دى، يو انسان كه هر څومره با عفته، با اخلاقه او بې ګناه هم وي خو چې له څنګ سره يې بيګانه ښځه په چوكۍ كې ناسته وي په ځانګړې توګه چې ښكلې او بې حجابه وي نو هيڅ امكان نه لري چې دا كس دې فتنې او شر ته تسليم نه شي ضرور به وربانديې اخته كيږي، نو دا كار حرام دى جواز نلري، نو مونږ له الله سبحانه وتعالى څخه غواړو چې زمونږ مسلمانانو ورونه د دغه شان اعمالو څخه وساتي كوم چې د ځوانانو په شر او فتنې باندې د اخته كيدو سبب ګرځي.
او كچيرې كوم بل غير مختلط پوهنتون پيدا نشي نو دا دې پريږدي او بل ښار او هيواد ته د لاړ شي چې په هغه كې اختلاط نه وي او مونږ ددې لپاره هيڅ جواز او كومه بله لاره نه وينو .
په لاندې شرايطو كې په مختلط پوهنتون كې درس او تدريس اضطراراً د مجبوريت په وجه جايز دى:

---

[٦٨]- فتاوى الاسلامي: ٣/١٠٣.

۱- دا چې بل د اختلاط او کېدون څخه پاک پوهنتون نه وي ولو که په بل ښار کې هم وي.

۲- بل ځای دا تخصص نه در سره کیږي او یا هم د انټرنیټ لیارې امکان نلري.

۳- کچېرې د داسې مختلط محیط سره مخ شي نو د خپل وس موافق به د سترګو حفاظت کوي، د اجنبي ښځې سره د لاس مصافحې، خبرو، ارتباطاتو، اختلاط او د هغه سره نږدې کیناستلو څخه به ځان ساتي.

۴- کچېرې د فتنې څخه ځان نشي ساتلای او په شهواتو کې د اخته کیدو خطر وي نو ددې ځای ترک کول واجب دي ځکه دین تر دنیا مهم دی.

وفي هذه الحالة فإننا أمام وضع اضطراري ، والحاجة فيه ماسّة وحيث إن الحاجة الشديدة تنزل منزلة الضرورة لذلك يراعى لجواز الدراسة المختلطة ما يلي:

۱- أن لا يوجد مكان آخر يمكن الدراسة فيه ولو في بلد آخر.

۲- أن لا يستطيع تحصيل هذه الشهادة بطريق الانتساب أو الدراسة عبر الإنترنت مثلاً.

٣- أن يذهب للدراسة في هذه الأماكن المختلطة مستعيناً بالله على مواجهة الفتن ، ويراعى غض البصر ما أمكنه وعدم ملامسة أو مصافحة المرأة الأجنبية وأن لا يخلو بها ، ولا يجلس بجانبها مباشرة .

وينصح الفتيات بالجلوس بمعزل عن الشباب وغير ذلك من الضوابط الشرعية.

٤- إذا لاحظ أن نفسه تنزلق إلى الحرام وتفتتن بمن معه من الجنس الآخر فسلامة دينه أهم من مغانم الدنيا كلها ، فلا بد من مفارقة المكان حينئذ ويغنيه الله عز وجل من فضله . والله المستعان.

و الله سبحانه وتعالى اعلم

**د نارينه عالم تدريس بيگانه ښځو ته :**

پوښتنه: يو ديني عالم كولای شي چې كوچنيو، پيغلو او واده شويو ښځو ته ديني تدريس وركړي په يوه اوطاق كې بغير د پردی نه؟

ځواب:

د پردې پرته مستقيماً د ښځو په مدارسو كې د نارينه لپاره درس وركول جواز نلري خطر او فساد دی.

کچیري ښځینه معلمه نه وي نو په دې کې څه حرج نشته چې نارینه معلم د پردې تر شا خاص د ښځو په مدارسو کې درس ورکړي ،داسې چې د نارینه او ښځینه زده کوونکو تر مینځ اختلاط (کېدون) نه وي او نه به هم د معلم او متعلمینو تر مینځ اختلاط وي.

ځینې نور مصلحتونه هم علماء کرامو ذکر کړی دي لکه:

۳ -د امکان په صورت کې به نارینه معلم د لوړ سن لرونکي وي، واده شوی او تقوا داره سړی به وي.

۴ -د درس ورکولو په جریان کې به د ضرورت په اندازه خبرې کوي.

۵ -په خبرو کولو کې به نرمې نه وي (خبرې به په مینه ناکه او جذابه لهجه) نه وي.

«لا یجوز للرجل تدریس البنات مباشرة ؛ لما في ذلك من الخطر العظیم والعواقب الوخیمة»[٦٩].

«لا حرج في تعلیم الرجل المرأة من وراء حجاب في مدارس خاصة بالنساء، لا اختلاط فیها بین الطلاب والطالبات، ولا المعلم والمتعلمات»[٧٠].

---

[٦٩]- فتاوی اللجنة الدائمة : ١٤٩/١٢ .
[٧٠]- فتاوی اللجنة الدائمة : ١٥۶/١٢ .

و الله سبحانه وتعالی اعلم

**د انترنیټ په وسیله د بیګانه سړي او ښځې ترمنځ خبرې ؟**

ځواب:

د شریعت په حدودو کې د دعوت الی الله، دیني پوښتنې او د ضرورت پرته د بیګانه سړي او بیګانه ښځې تر مینځ چټ (الکتروني خبرې) او ملګري د شهوت رانی، عشق بازی او شیطاني دام پرته بل څه نه دي چې دا کار له شک پرته حرام او پایلې یې خطرناکې دي.

مسلمان نارینه او ښځو ته حکم شوی چې له نامحرمو خپل نظر وساتي لقوله سبحانه و تعالی:[وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ][71].

او د ضرورت پرته به د بیګانه سره خبرې نه کوي ځکه بیګانه ښځې ته د شهوت،او عشق رانی په مقصد نظر کول او د هغې سره خبرې د زنا یو حصه ده.

[71]- سوره النور :٣١ .

رسول الله صلى الله عليه وسلّم فرمايلي:« إِنَّ اللَّهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنْ الزِّنَا أَدْرَكَ ذَلِكَ لا مَحَالَةَ فَزِنَا الْعَيْنَيْنِ النَّظَرُ وَزِنَا اللِّسَانِ النُّطْقُ وَالنَّفْسُ تَمَنَّى وَتَشْتَهِي وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذَلِكَ أَوْ يُكَذِّبُهُ»[٧٢].

ژباړه : الله تعالى د آدم د زوى د پاره د زنا يو حصه تعين كړى ده ، پس د ستركو زنا نا محرم ته كتل دي ، د ژبه زنا خبرې كول دي او د نفس زنا د هغه هيله او آرزو كول او غوښتل دي او شرمګا بيا د هغه يا تصديق كوي او يا تكذيب.

همدارنګه رسول الله صلى الله عليه وسلم : د بيګانه نارينه او ښځې له كېدون او اختلاط څخه منع فرمايلي ده : «إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ»[٧٣]

ژباړه: د بيګانه ښځو د خلوت نه ځان وساتئ.

او د اختلاط يو معنى د بيګانه ښځې سره خبرې، ارتباطات او نور هم اختلاط بلل كيږي.

يقيناً چې په هره ګناه كې خه عيش او خوند شته، د بيګانه سره په ملګرى، خبرو او عشق رانى كې هم خه عيش او خوند شته خو دا

---

[٧٢]- رواه البخاري (٦٢٤٣) ومسلم (٢٦٥٧).
[٧٣]- رواه البخاري (٥٢٣٢).

خوند لړ او تلونکی دی خو بدنامي او خطرناکي پايلي به يې پر ځای وي.

د خوندونو د لارې انتخاب په اصل کې ځان ته د دوزخ د لارې انتخاب دی: «وحفت النار بالشهوات» (او دوزخ په شهوتونو پوښل شوی دی).

واورئ ! که تاسې دا نه خوښوئ چې د انټرنيټ او تليفون له لارې مو خپله مور، خور يا ښځه له بيګانه سړي سره خبرې وکړي هغه هم د عشق او محبت نو د بل کس مور، خور او ښځې ته هم په همدې سترګه ګورئ .که د ځان عزت غواړئ نو د بل عزت وکړئ.

دا خو د غرب د لنډغرې ډيموکراسۍ او د ډيموکراسۍ پر ځنځيرونو باندې تړل شويو فاسقانو او فاجران کار دی چې غواړي د مسلمانانو په مينځ کې همداسې کارونه رواج کړي ځکه د دوی د شيطاني مډيا همدا اصل او قانون دی.

او د هغو بې بنده باره کورنيو کار دی چې پخپلو اولادونو او ښځو باندې کنترول نلري، الف يې په جګر کې نه وي، د حق او باطل

تميز او فرق کولی نشي د انټرنيټ او پرمختللی تليفون زمينه يې ورته برابره کړې وي.

**د ښځو لپاره په دفترونوکې دنده ترسره کول څه حکم لري ؟**

ځواب: اصل دا دی چې د نفقې او کورني احتياجاتو پوره کول د نارينه مسئوليت دی نه د ښځې، د ښځې نفقه د پلار په کور کې د هغې پلار، يا نيکه، ورور او يا کاکا پر غاړه ده او د خاوند په کور کې د هغې نفقه د هغې په خاوند، خسر او زوی باندې واجب ده.

لقوله سبحانه وتعالى : [الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاء بِمَا فَضَّلَ اللّهُ بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ وَبِمَا أَنفَقُواْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ][٧٤].

ژباړه: سړي پر ښځو حاکمان دي له دې کبله چې الله پاک ځينې د دوی ته پر ځينو نورو افضليت او غوراوی ورکړی دی او له دې امله چې نارينه ( د ښځو لپاره ) خپله شتمني لګوي.

او فرمايي:[وَعلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ][٧٥].

ژباړه: په دې صورت کې به د ماشوم پلار په ښه توګه هغوی (مور او ماشوم ) ته په ښه توګه خواړه او جامې ورکوي.

---

٧٤- سوره النسآء :٣۴ .
٧٥- سوره البقره : ٢٣٣ .

او حضرت جابر رضى الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د حجة الوداع په خطبه کې وفرمايلي:

«...ولهن عليكم رزقهن وكسوتهن بالمعروف »

ژباړه: او د هغوی (ښځو) پر تاسې باندې دا حق دی چې هغوی ته به په ښه شان نفقه او د استوګنې ځای برابروئ.

بل اصل دا دی چې ښځه به په کور کې اوسيږي د کور چارې به تر سره کوي او نارينه به د باندې چارې تر سره کوي، ښځه به د ضرورت پرته له کور څخه نه وځي، الله پاک فرمايي: [وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلاَ تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الأُولَى][٧٦] .

ژباړه: او تاسو په خپلو کورونو کې قرار ونيسئ او تاسو د ړومبني جاهليت د زينت ښکندونې په شان زينت مه ښکندوئ.

مګر کچېرې ښځه بې سرپرسته شي د نفقې پيدا کولو څوک نلري ، يا داسې چارې وي چې نارينه يې نشي تر سره کولی او د ښځو په موجوديت کې يې هغوی ته کول رواه نه وي لکه : د ښځو درملنه په خاصه توګه نسايي او ولادي څانګه، د ښځو تدريس، د ښځو د

[٧٦]- سوره الاحزاب: ٣٣.

جامو ګنډل او داسې نور نو د لاندې بنسټونو او شرایطو په صورت کې جایز دی :

١ -دا چې د نارینه سره به ګډون او اختلاط نه وي، یعنې کار به په کامل ښځینه چاپیریال کې وي هغه که علمي څانګه وي، روغتون وي، دفتر او یا بل کار ځای وي څکه چې د نارینه او ښځینه تر منځ اختلاط حرام دی کوم چې د حرمت دلائل یې مخکې بیان شول .

٢ -دا چې د هغې د ولي او سرپرست په اجازې به وي ځکه نارینه پر ښځو باندې مشران ټاکل شوي دي، په دلیل د دغه آیت شریف:[ الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ].

٣ -دا چې دا کار به د والدینو او یا خاوند د حقوقو او همدارنګه د اولاد د روزنې او پالنې په لاره کې خنډ نه وي بلکې د هغوی د حقوقو پر ځای کول به مقدم وي.

۴ -دا چې دغه کار به د هغې د طبعې جوړښت سره مناسب وي لکه : د الله تعالی طرف ته دعوت، درملنه، تعلیم او تدریس، خیاطي او نور، داسې سخت او وزمین کار به نه وي چې د هغې د توان څخه لوړ وي.

۵ -دا چې شرعي حجاب به مراعاتوي.

۶ -دا چې په هغه کې به سفر نه وي او که سفر وي د محرم څخه پرته به نه وي.

۷ -او دا کار به اصلاً حرام نه وي لکه : د آرایشګاه حرام سینګار ، فلم ، سریال او د موسیقي ځانګه کې کار کول.

و الله سبحانه وتعالی اعلم

## د ښځو لپاره د موټر چلول (موټرواني) جایز دي ؟

علماء «اللجنة الدائمة » وايي :

«لا يجوز للمرأة أن تسوق السيارة في شوارع المدن، ولا اختلاطها بالسائقين؛ لما في ذلك من كشف وجهها أو بعضه، وكشف شيء من ذراعيها غالباً، وذلك من عورتها؛ ولأن اختلاطها بالرجال الأجانب مظنة الفتن، ومثار الفساد»[٧٧].

ژباړه : د ښځې لپاره د موټر چلول او د هغه د ښار عمومي سړکونو ته را ایستل او د نورو موټرونو سره تلل جواز نلري ځکه چې په هغه کې د مخ او یا د مخ د ځنو برخو لوڅیدل او یا غالباً د څنګلو د

[٧٧]- اللجنة الدائمة :رقم (٢٩٢٣).

ځنو برخو لوځليدل چې له عورت څخه دی سبب ګرځي او د بيګانه نارينه سره اختلاط دی چې د فتنې او فساد سبب ګرځي .

فتوی علامه شيخ عبد المحسن بن حمد العباد:

أن قيادة المرأة السيارة يقودها إلى ترك الحجاب والاختلاط بالرجال والخلوة المحرمة والسفر بدون محرم وغير ذلك من المحاذير، والشريعة الإسلامية جاءت بسد الذرائع التي تؤدي إلى الحرام.

أن قيادة المرأة السيارة واختلاطها بالرجال من الديمقراطية الزائفة التي استوردها المسلمون من أعدائهم، وقد قال الله ﷻ: ﴿وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ أَنْ يَفْتِنُوكَ عَنْ بَعْضِ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ﴾ (٧٨) .

ژباړه :د ښځې لپاره موټرواني کول د حجاب د ترک او د نارينه سره د حرام اختلاط او د محرم پرته سفر کولو او نورو حرامو کارونو سبب کيږي اسلامي شريعت د ټولو هغو شيانو د مخنيوي حکم کوي کوم چې په حرامو کې د اخته کيدو سبب ګرځي.

ښځې ته د موټر چلولو دنده ورکول او د هغې کډون او اختلاط له نارينه سره د فاسدې ډيموکراسۍ څخه دی هغه ډيموکراسی چې

٧٧- سورة المائدة، الآية: ٤٩.

مسلمانانو د خپلو دوښمنانو څخه را وارده کړې ده[79]، الله سبحانه وتعالى فرمايي :

[وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ أَنْ يَفْتِنُوكَ عَنْ بَعْضِ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ][80].

ژباړه: او دا چې ته د دوی په مينځ کې فيصله کوه په هغه څه سره چې الله نازل کړی دی او ته د دوی د خواهشاتو پیروي مه کوه او ته له دوی نه محتاط اوسه (هسې نه) چې دوی تا له ځينو (حکمونو) نه واړوي، چې تا ته الله نازل کړي دي.

د الجزاير ستر عالم دوکتور شيخ عبدالمعز محمد علي فرکوس حفظه الله وايي:

فالأصل أنَّ ركوب السيَّارة وغيرِها مِنَ المراكب جائزٌ للذكور والإناث؛ لأنَّ «الأَصْلَ فِي العَادَاتِ الجَوَازُ وَالإِبَاحَةُ» ،أمَّا إذا كان تعلُّمُ سياقةِ السيَّارة للمرأة وقيادتُها يُفْضي إلى مَفاسِدَ ومَهالكَ : كإسقاط الحجاب، وحصولِ التبرُّج والاختلاط، وإفسادِ المجتمع، وتعريضِ المرأةِ لمختلف أنواع الابتزاز والأذى؛ فإنَّ ذلك يُمْنَعُ سدًّا

---

[79]- كتاب: لماذا لا تقود المرأة السيارة في المملكة العربية السعودية، للعلامة عبد المحسن بن حمد العباد البدر، ص ٩- ١٣.

[80]- سورة المائدة، الآية: ٤٩.

لذريعة المحرَّم؛ حفاظًا على دِينِ المرأة واحتياطًا لسُمْعَتِها وكرامتِها، وحمايةً لها مِنْ طمعِ مرضى القلوب ومِنْ عدوانِ ذئابِ الأعراض.

ژباړه: په موټر او نورو سپرليو باندې سپريدو کې اصل دا دی چې د نارينه او ښځو لپاره جايز دي ځکه په عاداتو کې اصل جواز او اباحت دی « الأَصْلَ فِي العَادَاتِ الجَوَازُ وَالإِبَاحَةُ» .

مګر کچيرې د ښځې لپاره د موټر زده کول او چلول د مفاسدو او خرابۍ سبب ګرځي لکه : د حجاب لرې کول او اختلاط او د ټولنې فسادول او په مختلفو بڼو ښځو ته ضرر رسول نو دا کار په حرام باندې د اخته کيدو په وجه منع او حرام دی تر څو د ښځې دين او کرامت وساتل شي او د هغو ليوانو څخه چې په زړه باندې مريضان دي او د کرامت دوښمان دي د هغوی د طمع او هيلې مخنيوی وشي.

شيخ فوزان الفوزان وايي :

هذه المسألة تكلم فيها العلماء وأجابوا عنها بأجوبة حاسمة - ولله الحمد - وهو أن قيادة المرأة للسيارة فيها محاذير، النظر إلى مصلحةً جزئية ففيها محاذير كثيرة ولا ينظر إلى جزئية وتترك بقية

الأضرار درع المفاسد مقدم على جلب المصالح هذه قاعدة شرعية، قيادة المرأة للسيارة فيها مفاسد منها: أنها ستضطر إلى خلع الحجاب، لا يمكن أن تقود السيارة وهي متحجبة وإن تحجبت فسيكون حجابها معرضاً للزوال معرض لزواله ضرورة. ثانياً من المفاسد أن المرأة ستختلط بالرجال، برجال المرور لاسيما إذا حصل حادث، وما أكثر ما تجري الحوادث ستختلط بالرجال، تذهب إلى دوائر الشرطة، وكذلك إذا حصل أعطال في سيارتها توقفت في أثناء الطريق ستضطر إلى طلب مساعدة الرجال كما يحصل بين الرجال فيما بينهم من السائقين فتكون المرأة معرضه للاختلاط المسبب للفتنه. ومن الأضرار أن المرأة إذا مسكت سيارة فإنها ستخرج في أي وقت شاءت من ليل أو نهار لأن مفتاحها معها وسيارتها معها فتذهب إلى حيث شاءت خلاف ما إذا كانت مربوطة بقيادة وليها يقود السيارة بها ويصاحبها، أما إذا كان الأمر بيدها فإنها ستنطلق حيث شاءت وحيث ما طلبت فيكون لها مع الأشرار اتصالات ولها مع الأشرار ارتباطات .

فقيادة المرأة للسيارة فيها محاذير كثيرة، وتعلمون الآن أن المرور مزدحم في الشوارع، فكيف إذا سمح للنساء بقيادة السيارات؟ تضاعفت السيارات، وتضاعف الخطر والزحام الشديد. فقيادة المرأة للسيارة فيها محاذير كثيرة أعظمها الخطر على أنوثتها وعلى عفتها وحيائها فهذا الذي سبب منع قيادة المرأة للسيارة.

ژباړه: په دې مسئله باندې علماوو خبرې کړي دي او پريکنده ځوابونه يې ورکړي دي الحمدلله .

د ښځې لپاره په موټر چلولو کې داسې څه دي چې بايد د هغه څخه پرهيز وشي، د يو اړخ کمې ګټې ته کتل او بل اړخ ته د نورو ضررونو پريښودل سم نه دي ځکه شرعي قاعده چې « د مفاسدو دفع کول د مصالحو له جلب څخه مخکې دي»

د ښځو لپاره په موټروانی کې لاندې مفاسد دي :

- بايد حجاب لرې کړي دا امکان نلري چې د موټر چلولو پر مهال حجاب ولري او کچېرې حجاب ولري د ضرورت پر مهال به يې لرې کوي .

- دوهم فساد يې دا دی چې نارينه سره اختلاط دی کله چې د نارينه سره يو ځای موټر چلوي امکان لري حادثه را منځته شي د زياتو حوادثو وجه د نارينه سره اختلاط دی (فکر بلې خوا ته ځي) او کله چې حادثه رامنځته شي د پوليسو دفترونو ته به ورځي، او کچهرۍ په لاره کې د څه تخنيکي مشکل سره مخ شي د نارينه څخه کومک غواړي چې دا کار به د نارينه سره د اختلاط سبب شي .

- او بل ضرر يې دا دی چې کله هغې ته موټر په واک کې ورکړل شي هر وخت يې چې زړه غواړي د خپل ولي او سرپرست د غوښتنې خلاف به د ورځې يا شپې له کور څخه وځي ځکه کلی له هغې سره ده او موټر له هغې سره دی او کله چې دا واک د هغې سره شو نو د کومو اشرارو سره يې چې د اړيکو جوړول زړه غواړي د هغوی سره به اړيکه جوړوي .

د ښځو په موټر چلولو کې زيات خطرات دي تاسې پوهيږي چې اوس د ترافيکو څومره ګڼه ګونه ده نو څنګه د ښځو لپاره د موټر چلولو ته اجازه ورکوئ؟ موټرونه زيات شوي او خطرونه او ګڼه

ګونه زیاته شوې نو د ښځې لپاره په موټر چلولو کې زیات مفاسد دي د هغې د فطرت، حیا او عفت لپاره نو همدا د ښځو د موټروانی څخه د منع کولو سبب دی.

وآخِرُ دعوانا أنِ الحمدُ لله ربِّ العالمين، وصلَّى الله على نبيِّنا محمَّدٍ وعلى آله وصحبِه وإخوانِه إلى يوم الدِّين، وسلَّم تسليمًا.

حمدالله "شاکري"

دراسات الإسلامي: الإكاديمية الإسلامية العالمية